# سوال دادے چه والي ؟؟؟؟؟

- نن له هر سړي سره دا سوال ده چې ولې زمونږ مسلمانانو له ژوند نه آرام او راحت رخصت شوے دے؟
- ولې هره ورځ له لانجو او مصيبتونو سره لاس او ګريوان يو؟ ولې زمونږ ژوند ټول وران شوی دی؟
- ولسونه له ولسونو سره په ټکر کې دي؟
- يو هېواد له بل هېواد سره په جګړه اخته دی؟
- ولې نن يو بني ادم بل بني ادم ته ليوه ګرځېدلی؟
- ولې هره ورځ په سل ګونو زره انسانان د جګړو په ترخ کې وژل کېږي؟
- ولې په ميليونونو روپۍ چور او تالان کېږي؟
- بشپړ کلي ړنګېږي، زورور کمزوري انسانان ژوندي خوري، مالدار بې غريب انسانان لوټوي، په حکومتي ارګانونو کې ظلم روان دئ، په قضايي نظام او محکمه کې بې انصافيانې دي، دولت او شتمنۍ په بدمستۍ لړلې ده، اقتدار او واکمني له کبراوغروره ډکه ده، په دوستۍ کې بې وفايي نغښتې، امانت په خيانت ورګډ شوی، په اخلاقو کې ربښتين توب ندی پاتې، يو انسان پر بل بې باوره دی؟
- د مذهب په لباس کې بې مذهبي ترسترګو کېږي، د ادم اولاده په بې شمېره ډلو وېشل شوې اوهره ډله بلې ډلې ته دچل، دوکې ،ظلم ، بې ايمانۍ په هره ممکنه بڼه تاوان رسول د ثواب کار ګڼي؟
- د دې ټولو خرابيو وجه اخر څه ده؟
- د خدای په خدايۍ کې او هر لوري ته چې مونږ سترګې غړوو، امن اوسوله په نظرراځي،په اوبو کې او دسمندر په څپوکې امن دی، د ونو او ځناورو تر مينځ سوله ده، دټولو مخلوقاتو انتظام په پوره سولې سره پرمخ ځي، هيڅ چېرې دفساد يا بې نظمۍ نښې نه ترسترګوکېږي، خو يوازې دانسان ژوند ولې لدې نعمت څخه محروم شوی دی؟

دا یوه لویه پوښتنه ده چې دهغې دځواب موندلو په موخه په خلکو کې سخته اندېښنه لېدل کېږي، خو پدې کرښو کې په پوره ډاډ سره دهغې ځواب ورکول کېږي، او ددې ټولو پوښتنو لنډ ځواب دادی چې انسان دخپل ژوند حقیقت او واقعیت په پام کې نه نېسي! له همدې امله ده چې په عذاب دی، تکلیف ګالي او دخوارۍ اوبد بختۍ پر اور سوزي.

که چېرې تاسې د روان ریل ګاډي دروازه دخپل کور دروازه وګڼئ،او دهغې په خلاصولو سره پداسې بڼه بهر ته را ووزئ لکه چې غواړئ دخپل کور په انګړ کې ګام کېږدئ، نوستاسي لدې غلط تصور او غلط سوچ څخه نه د روان ریل ګاډي دروازه ستاسې دکور او انګړ دروازه کېدای شي او نه هم هغه ډګرچې تاسې به پکې وغورځېږئ، ستاسې دکور انګړ کېدای شي.

که چېرې تاسې په خپل ذهن کې یوڅه انګېرئ نو له هغې څخه د ځمکې پر مخ شته حقیقتونه نشي بدلېدای

کله چې تاسې د روان ریل ګاډي څخه بهر ته را ودانګۍ نو دهغې پایلي څرګندې دي، که څه هم تاسې دسر او پښو له ماتېدوڅخه وروسته بیا هم دا ونه منئ چې کوم څه تاسې اټکل کړی ، هغه غلط وو، ،خوحقیقت هماغه دی کوم چې په ستر ګوښکاري!

په همدې بڼه که چېرې تاسې داسې ګومان وکړئ چې ددې دنیا کوم مالک او خدای نشته، یا دالله پر معبودیت سربېره د بل کوم معبود خدایي او واکمني هم پدې دنیا ومنئ، یا ځان پدې دنیا خدای او مالک وګڼۍ نو ستاسي له دا ډول ګومان کړلو سره د دې نړۍ او دمخلوقاتو حقیقت اوواقعیت نشي بدلېدای.

الله تعالی به ستاسي له هر ډول ګومان او یقین سره سره بیا هم ددې کایناتو او مخلوقاتو خدای او یوازینی معبود وي.

دا دنیا سلطنت او واکمني به چې تاسې په هغې کې د یوه رعیت په څېر اوسېږئ، له ټولو اختیاراتو سره سره همداسې دالله په لاس کې وي،البته تاسې چې دخپل غلط سوچ او غلط فهمئ له امله ځان ته د ژوندانه غلطه بڼه غوره کړي، دهغې تر ټولوستره سزا به تاسې په خپله ووینئ، که چېرې څه هم تاسې د ډېر زیات تکلیف له تېرولو وروسته بیا هم خپله لار سمه وګڼئ او دخپلې غلطۍ منلو ته تیار نه وئ!!.